




نهم کال پنځمه گڼه پرلپسې ۸۱ یمه گڼه رجب ۱۴۳۶هـق مئ ۲۰۱۵ ز

## علمي، سیاسي او جهادي میاشتینۍ خپرونه







### د امتیاز خاوند

دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنگي چارو کمیسیون

### مسؤل مدیر

شکور (شفق)

### کتنپلاوی

حسن خېل
حسن زوی
زبیر مسافر
ایوب صافي
حکمت بغلاني
حافظ سعید

### تخنیکي چارې

دفرهنگي کمیسیون تخنیکي څانگه

### مکاتباتي ادرس


پته: کابل ښار، پنځمه حوزه، دمجلې دفتر

E-mail: baakhtaraf@yahoo.com

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# پولادي عزم

## له دښمنه دتيښې لار ورکه کړې !!

دعزم عملياتوچټک بهير ، دجهادي فتوحاتولړۍ اوس هغې مرحلې ته رسولې ، چې نوريې ددښمن لوړپوړي داخلي اوبهرنۍ څيري اوجنرالان هم دهغو له پټولواوهرډول توجيه څخه عاجز ی اوبې وسه ښکاري اوپه جهر وايي چې دعزم عمليات ددوی له اټکل اوتدابيرو زيات پرمخ روان دي !

دکابل رژيم پخوانی لوی درستيزجنرال (کريمي ) او په افغانستان کې دالماني عسکرو مخکيني قومندان ( مارکوس ) په ګډه له الماني ورځپاڼي ( پريډ ) سره په تازه څرګندونوکې په افغانستان کې دروانو جګړو او دعزم عملياتودتکتيکونو په باب داسې ويلي : که څه هم دعزم عمليات لا په ړومبی مرحله کې دي خوتکتيکونه اودبريدونو نوعيت يې دپام وړ او له لاسته راوړنو ډک دي .

جنرال کريمي ، نوموړي ورځپاڼي ته ويلي ، مونږ فکر نه کاوه چې طالبان به دعزم دعملياتو تمرکز زيات په شمال کې ولري ، همدغه مهم دليل اولامل کيدای شي چې طالبانوددوی قواوې اوتدابير په غفلت کې واچول، جګړه يې له جنوب څخه شمال ته انتقال کړه .

المـانی جـنرال هـم پـه دې بـاور دی ، چـې طالبـانو پـه هغـو نقطـو کـې زیـات بریالیتوبونه ترلاسـه کـړي ، چـې هغـه تـردې وړانـدې خونـدي بلـل کیـدل اوکنټـرول یـې ترډیره ځایه دکابـل ددولـت پـه لاس کـې وو ، دمـارکوس پـه خـبره دمګـړی طالبـان دشـمال پـه ځو ولایتونوکې ګڼـې سیمي لانـدې کـړي اودجنګیـالیو روحیـه یـې هـم قـوي ښـکاري ، دهغـه پـه انـد دکابـل دګـډ دولـت ! پـه مـنځ کـې هـم کومـه قـوي هماهنګـي نشـته ، نوکیدای شي حالات نور هم دطالبانو په ګټه تمام شي .

کـه روانـو حقایقواوژونـدیو جریانـاتو تـه سرورښـکاره کـړو ، لـه شـک پرتـه چـې دمجاهـدینو سـړنیو عملیـاتو اوجهـادي چمتـوالي چـې لا پـه ابتـدایی مرحلـه کـې دي ؛ اوس یـې لا دکابـل د( ع – غ ) لـه شـړیدلې اداري څخـه لاراوګودرورکـه کـړي ده ، ځکـه مجاهـدینو پـه ړومبـي ګـوزارسره دهیوادپـه سطحه ګڼـې ولسـوالی ، پـه درځنـو سیمي او لسـګونه هغـه مهـم او حسـاس پـوځي مراکـز فتحـه اوولجـه کـړل چـې دامنیـت او سـاتني لپـاره یـې پـه زرګونـه پـوځي قطعـات ، غونډونـه او کمربندونـه موظـف اولـه مجهزجنګي ماشین سره پرې ولاړ وو .

خـوالله تعـالی دبـې وسـو خوغیرتمندومجاهدینوپـه متـو، تکتیکونـواو وسـایلوکې داسـې نصرـتونه اوبرکتونـه ولـورول چـې نـه یـواځې دمجاهـدینو سـلطه یـې پـه کمـو زیـانوسره پـه هغوسـاحواوولایتونوکې مسـتحکمه اویقینـي وګرځولـه چـې لـدې وړانـدې دهیواداواسلام دغلیمانولپـاره هغـه دامـن اوعیـش نـوش سیمی بلـل کیـدې ، بلکـې دورسـتیو مسلسـلوفتوحاتوپه تـرڅ کـې الله تعـالی مجاهدینوتـه دومـره جنګـي زخـایر، وسـلې او ډول ډول امکانـات پـه لاس کـې ورکـړل ، چـې ترډیـره وختـه بـه دمجاهـدینودفاعي اوجهادي ځواک پرې قدرتمن ، سیرابه اوځواکمن وي .

ان شاالله تعالی

# توره دوره

محمد جمال خطیب

له څوارلسمې عیسوي پېړۍ واخله تر اتلسمې پورې د تاریخ او فلسفې کتابونه د اروپا لپاره "توره دوره" ګڼي. دوی ورته Dark age وايي. دې دورې دا نوم د څو ځانګړو عواملو له کبله ګټلی. هر عامل په خپل ذات کې د ستر عذاب زور لري.

یو عامل دا و، چې دې دوره کې خپل منځي جګړې اوج ته رسېدلې وې. اروپا په قبیلوي بنسټ تقسیم وه، دوهم عامل دا و، چې علم(Science) سره د دین په نوم دښمني کېدله. فیلسوفانو په کې خپل ژوند له لاسه ورکړ. دریم دا چې اصلاحي خلک ژوندي نه پرېښوول کېدل. څلورم دا چې پاپانو د انجیل د بیانولو حق یوازې تر ځانه منحصر کړی و، چا باندې به چې د انجیل د کوم ایت استناد ثابت شو، پاپانو به یې د مرګ فیصله کوله.

له بده مرغه او بیا هم له بده مرغه چې هماغې تورې دورې په لړ توپیر سره زموږ سیمه هم لاندې کړې. قبیلوي جګړې لا نه شته، خو یو مهال تنظیمي رقابتونو دا تشه ډکه کړې وه او له نېکه مرغه د یوه مطرح اسلامي لورې له تشکیل سره ملت یو څه ارامي حس کړه، ګڼې خدازده چې نیمه نیم اسلامي رنګه ډلو به پر موږ څه نه کول!

علم سره د دین په نوم جګړه نه شته، خو د علم په نوم دین سره ظلم روان دی. ګویا خبره دلته معکوسه ده. هغه څه چې علم نه دی، علم باله شي او هغه څه چې علم دی تقالید ګڼل کېږي. هغه څه چې د انسان په انسانیت کې اضافه راولي، کمال ته یې رسوي، ذهن او زړه تراشي، شا ته غورځول شوي. د یوه ناسوبه تبلیغ له لارې یې دا مهال په کمالِ بې عدالتۍ مخه نیول شوې. بالمقابل هغه څه چې حرفوي مشغلې دي او هر ځای کې یې انسان ته کار کتلی د علم په نوم تقدیرېږي.

اصلاحي فکر هاغه د سیدجمال الدین افغان له وخته خنډونو سره مخامخ دی، په تېره چې څه کره کتنیزه بڼه هم ولري، نو د سر په بیه تمامیږي. یو وخت داسې و، چې زموږ خلک د خپل یاغي باغي طبیعت له کبله قابل اصلاح نه وو، خو له سره انقلاب را په دې خـوا بیـا اصـلاح او انتقاد وژل کیږي. ډېرې ککرۍ په همدې پرپوتې چې ولې د طواغیتو مخ کې نېغې شوې. دا چې د واک طلبو نفسیاتو واکمني ده، توره دوره اوږدیږي.

تازه راپورونه وايي، چې حکومت به علماو او خطیبانو باندې د جمعې پـه ورځ خطبـې او موضوعات وېشي. دا اقدام د دې لپاره نه دی، چې اصلاحات روان دي، بلکـې عینـا د اصـلاح د مخنیوي اقدام دی. دا خلک له دې وېرېږي، چې ملایان ازادانه د موضوعاتو انتخاب وکړي. دوی پوه شوي چې منبرونه خو بندولی نه شي، نو د مهارولو فکر یې داسې وکړ، چـې څـوک پـرې اعتراض ونه کړي.

دلته یو مهمه پوښتنه ولاړیږي، چې؛ که د اعتراض او نیوکو خبره وي، نو رسـنۍ خـو تـر ملایانو ډېرې او په سپینه بڼه نیوکې کوي، ولې هغوی ته همداسې کوم قدغن نه پیدا کیږي؟

اصل لامل دا دی، چې رسنۍ یو بل کار ته گمارل شوي. هغه تر هر تصور او خیالـه لـوړه دنده ده. دښمن ډېر هوښیار دی، داسې لارې سنجوي، چې موږ یې تر ډېره نه شو درکولی. کله چې ښه متضرر شو او بیا د عواملو په لټه کې شو، ایله مو سر خلاص شي، چې دا خو هم سـتر عامل و.

نن موږ وینو، چې رسنۍ تر کومې رسـېدلې. لـوړ معاشـونه د دې خلکـو دي. لیکنـې او کتابونه د دې خلکو تشهیریږي او په ډېره لوړه بیه خرڅیږي. شخصیتونه د همدې ژورنالېستانو پرسول کیږي. ځینې خو ان دومره مرتبې ته لوړیږي، چې پیروان او مریدان لري. پلیوني لـري. خلک ورپسې په فکر او کردار کې اقتدا کوي.

دا خلک ډېر مهم کار کوي. ځینــې وخــت د حکومــت او حکـومتي څېـرو داسـې خـبرې برسېروي، چې ښکاره او بربنډ اعتراض وي. حکومتي شخص په کې رسـوا او شرمېـدلی پـاتې شي، مگر ولې د دوی کنترول نه شته؟ ولې دوی ته موضوعات او مرکې نه جوړیږي؟

علماء که نقد یا اعتراض کوي یا شکونه اظهاروي، نو ورسره يې دا خبره هم په خوله وي، چې اسلامي نظام کې دا کمی نه شته. اعتراض وکړي، سمدستي وايي، چې شريعت د دې موضوع په اړه دا حکم لري. د خلکو فکر او نظر د يوه بدیل نظام او قانون لوري ته اوړي. خلکو ته سمدستي سوال پیدا کیږي، چې ولې موږ له دینه لرې ساتل کیږو؟ څوک دي، چې د دين د حاکمیت لپاره کار کوي؟ ولې ورسره نه يو ځای کیږو؟

همدغه پوښتنې د دې طواغیتو لپاره سر خوږی دی. همدغه پوښتنې دوی ته تکلیف جوړوي. همدغه پوښتنې د دې باعث شي، چې يو انسان حرکت وکړي او لاس په کار شي.

رسنۍ بیا داسې نه دي. رسنۍ يو کار دا کوي، چې د مرکو او څېړنو له لارې حکومت په کې رسوا کیږي، مگر ۹۹ سلنه فعالیت يې بیا ټول د حکومتونو او چارواکو په گټه او دفاع کې دی. د رسنیو په چېړ او تحقیق کې ذهن دې ته نه ځي، چې کوم بدیل هم شته یا بل لوري ته اړتیا شته، بلکې دوی دې سره سره چې کوم ځای حکومت شرموي، دا کوښښ هم کوي، چې د مرکې او بحث نت

يجه کې متحرک نفسیات ارام کړي یا په بل عبارت د مرکې او بحث جانبي عوارض دفع کړي.

دا رسنۍ د هنر په نوم کوم ارزښت ته ژمنې دي؟ دا رسنۍ په خپلو خپرونو کې د د کومو ارونو او ارزښتونو پخلي او ترکیز ته کار کوي؟ دې رسنیو بوسه او مټاک مغزونه تر کومه لوړ کړل؟ زه يې په ننگونه وایم؛ تاسې د واکمنې ادارې غټ غټ شخصیتونه وگورئ، چې رواني حالت يې روغ نه دی. درک او بصیرت يې تر لېونیانو ډېر کمزوری او نیمگړی دی. لامل دا دی، چې بهرنیان همداسې ماتو او کمزورو خلکو ته اړ دي، چې هره خبره يې ومني. کار ورته وکړي. ستونزې ونه زېږوي!

نتیجتا وایم، چې دا توره دوره له اروپایې هغې ډېره توره په دې ده، چې هلته لا دا ستونزه نه وه، چې حقایق واړول شي. مټاک په چغزي معرفي شي او بوسه په جوهر دار!



# ډرون د بشر وژنې پرمختللې وسله

ميوند سادات

په افغانستان کي د امريکا او ملګرو يرغلګرو ځواکونو په هوايي بريدونو، مخامخ ډزو او شپنيو چاپو کي په سلهاوو زره افغانان شهيدان او ژوبل شوي دي، د يرغلګرو د b۵۲، f۱٦ او کروز راکټونو په بريدونو کي په يو ځايي توګه په ارزګان، ننګرهار، پکتيا، کندوز، هلمند، لوګر، کندهار، هرات، فراه، کونړ او.... کي په سلهاوو تنه ولسي وګړي د ښځو او کوچنيانو په ګډون شهيدان او ټپيان شوي دي.

په دې وروستيو کلونو کي نيواکګر ځواکونه د نورو الوتکو په پرتله د کم مصرف په وجه د بې پيلوټه طيارو څخه ډير کار اخلي، خو د ډرون بريدونو اکثره قربانيان بيا ملکيان وي.

د هيواد په ګوټ ګوټ کي په ځلونو د بې پيلوټه الوتکو په حملو کي ملکي وګړي شهيدان شوي او کورونه يې وران شوي دي.

په امريکا کي بروکينګر موسسې په خپل وروستيي څېړنيز راپور کي ليکلي چي په يوه شپه او ورځ کي د افغانستان پر اسمان شل بې پيلوټه الوتکي الوت کوي.

د بروکينګر په يادشوی راپور کي راغلي چي په افغانستان او پاکستان کي د بې پيلوټه الوتکو د بريدونو په هرو لسو قربانيانو کي فقط يو تن يې د القاعده او طالبانو سره تړاو لرونکی وي نور نهه واړه ولسي وګړي وي.

د امريکا چاپ (مک کلاچی) ورځپاڼي تېر کال په خپل راپور کي وليکل چي د امريکا د بې پيلوټه الوتکو په حملو کي په سلهاوو داسي خلګ وژل شوي چي د طالبانو سره يې هيڅ تړاو نه درلود، ورځپاڼه کاږي چي که امريکايي قوماندانان کوم کس جدي خطر وګڼي، نو د دوی په نظر ضرور دا نه ده چي د دغه کس په اړه د اسنادو په راغونډولو لاس پوري شي، بلکي مهمه داده چي تر هر څه د مخه همدغه خطر له منځه يوو ړل شي.

په روان (۲۰۱۵) میلادي کال کې چې امریکا په افغانستان کې رسما د خپل پوځي ماموریت پای ته رسیدل اعلان کړي، د بې پیلوټه الوتکو په بریدونو کې یې په تېرو څلورو میاشتو کې لاندې ذکر شوي ملکي وګړي د ژوند له خوږو بې برخې شوي او کورونه یې ویجاړ شوي دي. البته دا سهي ده چې د تېرو کلونو په نسبت سږ کال د یرغلګرو په هوایي بریدونو کې کمښت راغلی دی، خو لکه څنګه چې دوی د خپل نظامي ماموریت پای اعلان کړی هماغسې نه ده او س هم اشغالګر عسکر د افغانانو پر کورونو چاپې اچوي، خلک بندیانوي او هوایي بریدونه کوي.

دجنوري په ۶مه د کونړ ولایت د مانوګي ولسوالۍ په شوریک سیمه کې دیرغلګرو په ډرون حمله کې دوه تنه ولسي وګړي (سلطان سید او د هغه زوی) شهیدان شوي دي.

دجنوري په ۱۷ مه د ننګرهار ولایت د لعل پورې ولسوالۍ په چکنور سیمه کې دیرغلګرو د بې پیلوټه الوتکي په برید کې درې تنه ولسي وګړي شهیدان شو ي دي.

دجنوري په ۱۹ مه د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ د وزیرو په میرزاخیل سیمه کې یرغلګرو ځواکونو بمبار کړی، په دغه بمبار کې دوې ښځې، یو ماشوم او دوه سړي شهیدان شوي دي.

دفبروري په ۸ مه د ننګرهار ولایت د اچین ولسوالۍ باندر سیمه کې دیرغلګرو د بې پیلوټه الوتکي په برید کې دوه تنه ولسي وګړي شهیدان شوي دي.

دفبروري په ۱۲مه د ننګرهار ولایت د نازیان ولسوالۍ په سپیني ژۍ سیمه کې دیرغلګرو د ډرون په برید کې دوه تنه ولسي وګړي شهیدان شو ي دي.

دفبروري په ۱۷مه د ننګرهار ولایت د خوګیانو ولسوالۍ په قیلغو میاګانو کلي کې اشغالګرو بمبار کړی، دعیني شاهدانو په وینا په دغه حمله کې درې تنه ملکي هیوادوال (دل اغا ولد لعل زمان، نقیب الله ولد سید ملا او نیاز محمد ولد میرزا) شهیدان شوي دي.

داپریل په ۳۰ مه د کندز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ په کلتیپه سیمه کې دیرغلګرو ځواکونو په بمبار کې شپږ تنه ملکي هیوادوال د ښځو او کوچنیانو په ګډون ژوبل شوي او د خلګو کورونو ته زیانونه اوښتي دي.

په غرب کې د پوځي چارو زیاتره پوهان او تحقیقاتي مرکزونه دې پایلي ته رسیدلي چې ډرون حملو د وسله والو په پرتله ډیر زیات زیان ملکیانو ته رسولی دی، دغه وژنکې وسله د ټاکل شوو اهدافو په له منځه وړلو کې چنداني موثره نه ده واقع شوې، ځکه په وار وار داسې شوي چې په غرونو کې دلګیو راټولو نکي ملکي وګړي د وسله والو په ګومان په نښه شوي دي، او همدا راز په فصلونو کې بېلچه په لاس بې شمېره ګروند ګرو د بې پیلوټه الوتکو په حملو کې خپل ژوند له لاسه ورکړی دی، په ټوله کې دا اوس یوه منل

شوی واقعیت دی چې د بې پیلوټه الوتکو په زیاتره بریدونو کې ولسي وګړي او د استوګنې سیمې په نښه شوې دي .

د پوځي چارو شنونکو ،د جګړې د قوانینو مدافعینو او دبشري حقونو سازمانونه ته په کار ده،چې نور دانسان وژني ددغې پرمختللې وسلې (بې پیلوټه الوتکې) د کارولو پر ضد اوږده چوپتیا ماته کړي، ددغې وژنکې وسلې په اړه کنفرانسونه دایر کړي، ویناوې او لیکنې وکړي او دکارونکو پر ضد یې پرله پسې لاریونونه وکړي، ترڅو ددغه بې رحمه او ړندې بلا له وژونکو منګولو څخه انسانیت په تېره دښځو ، ماشومانو او بې دفاع خلګو ژوند وژغورل شي .

د دې یقین وسعت او اندازه ستا په زړه کې څومره دی؟

دې پوښتنې ته درست او دقیق جواب، داسې یو شی دی چې ته باید د هغه په اړه د مطمئن کیدو لپاره هڅه او پلټنه وکړې. خو ولې کیدای شي ځینې خلک وایي: مونږ په خپله په دې خبرو پوهیږو ، په یقیني ډول پوهیږو چې الله جل جلاله په هر څه قادر دی، نو په دې مسئله یقین لرو!

هو ، کیدای شي ځینې خلک د الله جل جلاله په قدرت باندې یقین ولري، خو په عادي او لفظي توګه نه له زړه نه، هغه شی چې مونږ پرې دلته تاکید کوو او غواړو چې ریښې یې محکمې شي، هغه د زړه یقین دی، ځکه یقین لومړنۍ درجه عبادت دی.

## قاري سعید




بلبل له ګل ، ګل له ګلزاره کړه واخیستله
ته وا قیامت شو یار له یاره کړه واخیستله

بیا مې نو مړ، یا مې ویده ، یا مې بې درده بوله
د زړه له سره دې که خاره کړه واخیستله

مور د ډېرو له بارانه کړې نه دي کړې
مور د هندارو له غباره کړه واخیستله

بیا به دهسک لمنې سرې کړي دشیطان په وینو
بیا یوه ستوري له مداره کړه واخیستله

زړه خو همدا وو څه داوښکو په ویاله وبهېد
پاتې د آه افسوس په لاره کړه واخیستله

لکه چې بیا یې دخزان دپښو ښکالو واوریده
داچې رنګونو له بهاره کړه واخیستله

داسې یې وګڼه چې روح وو له کالبوته ووت
سعیده درد که له پرهاره کړه واخیستله

جواد

# په الله جَلَّ جَلَالُهُ باندې يقين ستا په ژوند کې څه رول لري؟

کيداى شي ځينې خلك يقين ولري، خو دا يقين په عمومي توګه تش ګومان دى د ټولو جزئياتو او عملي صورت سره نه دى تړلى.

د مثال په توګه:

که چېرې يو کس تا ته د يوه داسې هيواد چې نه ته ورغلى يې او نه دې ليدلى نوم واخلي. مثلا درته ووايي: د ځمکې په سر يو هيواد «يمن » دى، حال دا چې تر اوسه تا يمن نه دى ليدلى او نه دې د هغه په اړه څه اوريدلي. خو بيا هم ګومان کوې چې دا سړى رښتيا وايي: بناء په دې سره ستا په ذهن کې يقين پيدا شو چې د ځمکې په سر د «يمن» په نوم يو هيواد شته، خو که چېرې يو بل کس راشي او تا ته ووايي: نه، دا سړى دروغ وايي، د «يمن» په نوم هيواد نشته، په داسې حال کې په تا کې يو ډول شك او تردد پيدا کيږي. خو که چيرې لس کسان تا ته ووايي چې د «يمن» په نوم هيواد شته، ستا يقين ورسره اضافه کيږي او داسې احساس کوې چې دا خبرې رښتيا دي، او که چيرې لس کسان نور راشي ووايي: د «يمن» په نوم هيڅ هيواد نشته، يقين دې يو ډول ګډوډ کيږي او که چيرې سل کسان راشي او تا ته ووايي چې «يمن" شته، ستا يقين نسبت مخکې ته زياتيږي او که چيرې دې سره يمن ته د سفر ويزه هم تر لاسه کړې، يقين دې نور هم اضافه کيږي او که چيرې پخپله «يمن» ته ولاړې او په ښارونو کې يې وګرځيدې، ستا په زړه کې به د دې هيواد وجود د غرونو د محکموالي په څير محکم شي او بيا به ته له دې يقين نه چې تر لاسه دې کړ او زړه کې دې محکم شو، کيداى شي دفاع هم وکړې که يو مليون کسان راشي او ټول تا ته ووايي: د «يمن » په نوم هيواد نشته، هيڅکله به دا خبره ونه منې. ځکه په سترګو دې وليدو، دا هغه يقين دى چې زمونږ هدف دى او هڅه کوو چې په زړونو کې يې محکم کړو.

په الله جل جلاله باندې د يقين پيدا کولو او د هغه د محکم کولو په اړه زمونږ د زړونو حال همدا ډول دی.

زړه يوازې په تقليد سره دې ډول يقين ته نه شي رسيدلی، بلکې د الله جل جلاله په اړه د علم او ادراك، بندګۍ، خضوع او عاجزۍ سره انسان کولی شي چې د هغه ذات په اړه محکم يقين تر لاسه کړي چې د هر ډول عيب څخه پاك دی.

د مثال په توګه: ممکنه ده چې له پلار يا له يو بل کس نه يې اوريدلي وي چې انسان په قبر کې کيښودل کيږي، يا نعمت ته رسيږي = الله جل جلاله دې مونږ د نعمت والاوو له جملې نه وګرځوي = يا په عذابيږي = الله جل جلاله دې مونږ له عذاب نه وساتي= دا ټول په دنيا کې د انسان د اعمالو سره تړاو لري، خو کيدای شي چې يو کس له بې دينوسيکولرستانو نه ستا په زړه کې دا شبهه واچوي چې په قبر کې هيڅ حساب نشته =الله جل جلاله دې مونږ د هغوی له باطلو نه وساتي= نو په تا کې به يو ډول شك او ګډوډې پيدا شي او که چيرې د شيوخو او علماءو يوې علمي غونډې ته حاضر شې چې هلته د قبر د ژوند او حساب په اړه خبرې وشي يا د يوه معتمد او پرهيزګار عالم نه پوښتنه وکړې، بيرته به دې اعتماد په ځای شي.

که چيرې احيانا د دغو معتمدو علماءو يو کتاب ولولې، نه د هغو کسانو چې په شبهاتو پسې روان دي اعتماد دې نور هم اضافه کيږي.

که چيرې قران د تفسيره سره ولولې او د رسول الله صلى الله عليه وسلم احاديث مطالعه کړې، د قبر،حساب کتاب،نعمت او عذاب په اړه به دې يقين بشپړ او محکم شي. د دې احاديثو د جملې څخه يو هغه حديث دی چې له ام المؤمنين عائشه (رضی الله عنها) څخه روايت دی فرمايي: دوه زړې يهودۍ ښځې ما ته راغلې او وې ويل: مړو ته په قبر کې عذاب ورکول کيږي. ما هغوی دروغژنې وګڼلې او په خبرو مې باور ونه کړ. هغوی لاړې، رسول الله صلى الله عليه وسلم کور ته راغی او ما دا کيسه ورته بيان کړه . رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: »صَدَقَتَا،إِنَّهُمْ يُعَذَّبُونَ عَذَابًا تَسْمَعُهُ الْبَهَائِمُ كُلُّهَا« "دوی رښتيا ويلي، دوی (اهل قبر) ته داسې عذاب ورکول کيږي چې ټول څناور يې اواز اوري" عائشه (رضی الله عنها) فرمايي: له دې نه وروسته مې تل رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلو چې په لمانځه کې به يې د قبر د عذاب نه الله جل جلاله ته پناه وړه. [بخاري]

وروره! رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وګوره چې د خپل نبوت او معصوميت باوجود، د قبر د عذاب نه الله جل جلاله ته پناه وړي، نو

مونږ څوك يو؟! پخپل پيغمبر پسې اقتدا وكړه او تل د قبر د عذاب نه د الله جل جلاله لور ته پناه ويسه، ځكه دا كار حقيقت دی. الله جل جلاله دې مونږ ټول ترې وساتي.

له ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم به داسې دعا كوله:

اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ وَمِنْ عَذَابِ النَّارِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَحْيَا وَالْمَمَاتِ، وَمِنْ فِتْنَةِ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ» [البخاري].

" پروردگاره! زه د قبر له عذابه، د اور له عذابه،د ژوند له فتنې نه، د مرگ له فتنې نه او د مسيح د جال له فتنې نه ستا لور ته پناه در وړم"

له ابو هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل:

إِذَا تَشَهَّدَ أَحَدُكُمْ فَلْيَسْتَعِذْ بِالله مِنْ أَرْبَعٍ ، يقول :اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابِ جَهَنَّمَ، وَمِنْ عَذَابِ القَبْرِ، وَمِنْ فِتْنَةِ المَحْيَا وَالْمَمَاتِ ، وَمِنْ شَرِّ فِتْنَةِ المَسِيحِ الدَّجَّالِ» [مسلم]

"كله چې يو په تاسې كې تشهد(يعني: د لمانځه اخره برخه كې) وايي، نو له څلورو شيانو نه دې الله جل جلاله ته پناه ويسي. داسې دې ووايي: پروردگاره !زه د دوزخ د عذاب نه، د قبر د عذاب نه، د ژوند او مرگ د فتنې نه او د شر د مسيح دجال د فتنې نه ستا لور ته پناه دروړم"

وروره! تل د رسول الله صلی الله عليه وسلم وصيت په غوږ كې ونيسه او تل وروسته له اخرني تشهد نه او مخكې له سلام نه د قبر له عذاب نه د الله جل جلاله لور ته پناه ويسه، او دا خپله دعا وگرځوه ترڅو ترې خلاص شې. الله جل جلاله دې مونږ او تاسې د قبر د عذاب نه وساتي.

له عائشه (رضی الله عنها) څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل: »عَذَابُ الْقَبْرِ حَقٌّ» [البخاري].

د قبر عذاب واقعيت لري"

»استجيروا بالله من عذاب القبر فإن عذاب القبر حق»[المعجم الكبير]

"د قبر له عذاب نه د الله جل جلاله لور ته پناه ويسئ، ځكه د قبر عذاب حق دی"

له دينه وروسته چې دا مسئله دې زده كړه، اوس په زړه كې د دې غټ يقين د تثبيت مرحلې ته رسيږې چې هغه په دې علم باندې عمل كول دي، په ډيره عاجزۍ او خضوع سره د هغه په وړاندې عبادت كوې ترڅو تا د هغو خلكو نه وگرځوي چې له دې عذاب نه خوندي دي او د عذاب قبر نه د الله جل جلاله لور ته په پناه وړلو سره د يقين سترې مرحلې ته رسيږې، حتی چې شيطان هم نشي كولی چې تا گډوډ كړي او په زړه كې دې شك واچوي.

وروره!

باید په زړه کې بشپړ یقین پیدا کړې ترڅو ستا لپاره په دې دنیا کې د هغو شبهو په اړه چې داسلام دښمنان یې واردوي، ښکلې توښه وي.

د همدې یقین د ترسیخ او محکموالي لپاره د هغې طریقې نه کار واخله چې د قبر،حساب او کتاب، نعمت او عذاب، په مسئله کې بیان شوه همدا ډول د هغو مسائلو ته چې د اسلام د ښمنان هڅه کوي ترڅو د هغو په اړه شبهات وارد کړي، متوجه اوسيږه. ځینې د دې مسائلو نه په لاندې ډول دي:

۱ =په قران باندې د اکتفا کولو او په سنت باندې د عمل پرېښودلو شبهه.

۲ = په راویانو کې د شك او تردید رامنځ ته کولو شبهه، لکه ابوهریره رضی الله عنه او امام بخاري (رحمه الله) او داسې نور شخصیات چې د اسلام په خپرولو کې یې لویه ونډه درلوده.

۳ =د ښځې په اړه شبهات، لکه حجاب، د ښځې سنتول او........

د – هدایت- له کتاب څخه

# د جمعې ورځ

عَنْ أَبِي لُبَابَةَ بْنِ عَبْدِ الْمُنْذِرِ رَضِيَ الله عَنْهُ قَالَ:قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :"إِنَّ يَوْمَ الْجُمُعَةِ سَيِّدُ الْأَيَّامِ وَأَعْظَمُهَا عِنْدَ الله وَهُوَ أَعْظَمُ عِنْدَ الله مِنْ يَوْمِ الْأَضْحَى وَيَوْمِ الْفِطْرِ فِيهِ خَمْسُ خِلَالٍ: خَلَقَ اللهُ فِيهِ آدَمَ، وَأَهْبَطَ اللهُ فِيهِ آدَمَ إِلَى الْأَرْضِ، وَفِيهِ تَوَفَّى اللهُ آدَمَ، وَفِيهِ سَاعَةٌ لَا يَسْأَلُ اللهَ فِيهَا الْعَبْدُ شَيْئًا إِلَّا أَعْطَاهُ مَا لَمْ يَسْأَلْ حَرَامًا، وَفِيهِ تَقُومُ السَّاعَةُ، مَا مِنْ مَلَكٍ مُقَرَّبٍ وَلَا سَمَاءٍ وَلَا أَرْضٍ وَلَا رِيَاحٍ وَلَا جِبَالٍ وَلَا بَحْرٍ إِلَّا وَهُنَّ يُشْفِقْنَ مِنْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ."

ژباړه : ابو لبابه رضی الله عنه وايي : رسول الله صلی الله علیه وسلم وایې : دالله په نزد دجمعې ورځ په ټولو ورځوکې غوره اولويه ورځ ده ، او داورځ دالله په نزد دلوی اوکوچني اختر له دواړو ورځو لويه ده او دالويوالی يې دپنځو شيانو لامله ده : دجمعې په ورځ ادم پيداشوی دی ، په دې ورځ ځمکې ته راکوز شوی دی ، په دې ورځ ادم عليه السلام وفات شوی دی، په دې ورځ کې داسې يو وخت دی چې هرڅه شوال پکې وکړل شې الله يې قبلوې ترڅوچې دحرام شي سوال نه وې اوپه دې ورځ به اخرت دریږي . الله ته نږدې ملايکې ، اسمان ، ځمکه ، بادونه غرونه او سيندونه ټول دجمعې له ورځې ويريږي . يعنې داهرڅه په دې ورځ ويريږې چې قيامت به راشي.

أخرجه ابن أبى شيبة (٤٧٧/١ ، رقم ٥٥١٦) ، وأحمد (٤٣٠/٣ ، رقم ١٥٥٨٧ (، وابن ماجه (٣٤٤/١ ، رقم ١٠٨٤) ، قال المنذري (٢٨١/١): فى إسنادهما عبد الله بن محمد بن عقيل وهو ممن احتج به أحمد وغيره. وقال البوصيري (١٢٩/١): هذا إسناد حسن. وابن سعد (٣٠/١) ، والطبراني (٣٣/٥ ، رقم ٤٥١١) ، وأبو نعيم فى الحلية (٣٦٦/١) . وأخرجه أيضًا: البيهقي فى شعب الإيمان (٩٠/٣ ، رقم ٢٩٧٣ (وحسنه الألباني (صحيح الترغيب ، ٦٩٥).



# آیا نعمت‌های بهشت را می‌شناسیم؟

خداوند متعال برخی از اوصاف جنت را به منظور ترغیب و تشویق برای دسترسی به آنها برای ما تعریف نموده است، و بعضی از نعمت‌های آن بیان شده و بسیاری از آنها را برای فراهم‌آوردن زمینهٔ بیشتر جهت تلاش و کوشش بشر- مخفی نموده است ...انواع نعمت‌های جنت هرچه بیشتر شناخته شوند، عقل بشر- از درک و فهم آن ناتوان‌تر می‌ماند، زیرا خوبی‌هایی در بهشت وجود دارد که بر هیچ فکری خطور نکرده و هیچ کسی در هرگونه حالتی آن را نمی‌شناسد.

اکنون این سؤال مطرح می‌شود که آیا بهشت و نعمت‌هایش را می‌شناسیم؟ بدون تردید آنجا سرایی جاودانه و همیشگی می‌باشد، انسان بهشتی نه سختی می‌بیند و نه بدبختی، و نه در آن اندوهگین می‌شود و نه گریه می‌کند، لذاتش را انتهایی و خوشی‌هایش را پایانی نیست، نعمت‌هایش عقل انسان را متحیر و اندیشه اش را متعجب می‌گرداند.

هي جنة طابت وطاب نعيمها

فنعيمها باق وليس بفان

آن باغی است بسیار خوب و دارای نعمت های زیبا، پس نعمت‌های آن برای همیشه باقی می‌ماند و هرگز فنا نمی‌پذیرد.

بهشت نوری است که می‌درخشد، وریحانی است که فضا را عطرآگین می‌کند، کاخی است محکم، نهری است جاری و میوه‌ای است رسیده... و دارای حوریانی است زیبا وخوبروی. و لباس‌های بسیار در جایگاهی همیشگی و ابدی، و... دارای خانه‌هایی بلند و زیبا که برای اهل و صاحبان‌شان مانند ستاره‌ای است که در افق می‌درخشد و همواره در حال نورافشانی می‌باشد .

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضی الله عنه قَالَ: قُلْتُ: يَارَسُولَ اللَّهِ! مِمَّ خُلِقَ الْخَلْقُ؟ قَالَ» :مِنَ الْمَاءِ». قُلْتُ: مَا بِنَاءُ الْجَنَّةِ؟ قَالَ: «لَبِنَةٌ مِنْ فِضَّةٍ، وَلَبِنَةٌ مِنْ ذَهَبٍ، وَمِلاَطُهَا الْمِسْكُ الأَذْفَرُ، وَحَصْبَاؤُهَا اللُّؤْلُؤُ وَالْيَاقُوتُ، وَتُرْبَتُهَا الزَّعْفَرَانُ، مَنْ يَدْخُلْهَا يَنْعَمْ وَلاَ يَبْأَسْ، وَيُخَلَّدْ وَلاَ يَمُوتْ، لاَ تَبْلَى ثِيَابُهُمْ وَلاَ يَفْنَى شَبَابُهُمْ.() «

ترجمه: «از ابوهریره رضی الله عنه مرویست که عرض کردم: یا رسول الله! مخلوقات از چه چیزی آفریده شده اند؟ فرمود: از آب، عرض کردم: ساختمان‌های بهشت از چه چیزی ساخته شده؟ فرمود :خشتی از نقره، و خشتی از طلا و ملاط آن (ملاط: مخلوطی از گل یا ماسه و سیمان که میان دو خشت قرار داده می‌شود) مُشک خوشبو، و سنگریزه‌هایش از مروارید و یاقوت، و خاکش زعفران می‌باشد، هرکس داخل آن شد، به خوشی زندگی کرده ناامید نمی‌شود، جاویدان می‌ماند و هرگز نمی‌میرد، لباس‌های اهل جنت کهنه نمی‌شوند و جوانی آنها از بین نمی‌رود.«

بنابراین، جنت و نعمت‌هایش بسیار خوب، زیبا و لذت‌بخش می‌باشند: لِلَّذِينَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَأَزْوَاجٌ مُطَهَّرَةٌ وَرِضْوَانٌ مِنَ اللَّهِ وَاللَّهُ بَصِيرٌ بِالْعِبَادِ ١٥] (آل عمران١٥].

ترجمه: «برای کسانی که پرهیزگاری پیشه کنند نزد پروردگارشان باغ‌هایی (در جهان دیگر) است که رودخانه‌ها از پای (درختان) آنها می‌گذرد، در آنجا جاویدان هستند. (همچنین ایشان را (همسران پاکیزه (از هر پلیدی و نقصی) و خشنودی خداست. و خداوند (رفتار و کردار) بندگان را می‌بیند. (و نیت درونی ایشان را می‌داند.

وجنات عدن ذخرفت ثم أزلفت
لقوم على التقوى دواما تبتلوا
بها كل ما تهوي النفوس وتشتهي
وقرة عين ليس عنها تحول

باغ‌ها و بهشت جاوید برای مردمی مزین و آراسته و آماده شده اند که همیشه از خدا می‌ترسند و با تقوایند، و به خاطر رسیدن به بهشت از خواهش‌های نفسانی دوری می‌کنند، زیرا بهشت مکانی است که باعث راحت و آرامی چشم‌ها می‌شود و هرکس داخل بهشت شد هرگز از آن جدا نمی‌شود.

برادر و خواهرم! آیا ممکن است که عقل انسان این همه نعمت‌ها را درک کند و سپس نسبت به آنها بی‌رغبتی نشان دهد؟!!

این ندای خیر است که تو را با دلسوزی فرا می‌خواند، و نیروی رقابت و مسابقه برای رسیدن به بهشت را در وجود تو تحریک می‌کند:

وَسَارِعُوا إِلَى مَغْفِرَةٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمَاوَاتُ وَالأَرْضُ أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ (١٣٣) [آل عمران: ١٣٣]

ترجمه: «(و با انجام اعمال شایسته) به سوی آمرزش پروردگارتان و (رسیدن به بهشتی) بشتابید و بر یکدیگر پیشی گیرید که پهنای آن (همچون پهنای) آسمان‌ها و زمین است؛ (و چنین جایگاه باارزشی) برای پرهیزکاران تهیه دیده شده است.

بنابراین، به سوی خودداری از گناه وطلب بخشش از گناهان و زندگی ابدی در سرزمینی

جاوید بشتاب! زیرا بشارت‌دهنده به تو چنین مژده می‌دهد:

یا طالب الــدنیا الدنیة إنــها
شرك الردى وقـرارة الأقــذار
دار متى ما أضحكت في يومها
أبكت غداً تباً لها مــن دار

ای کسـی کـه خواهـان دنیـای پسـت و بی‌ارزش هستی، بدان دنیا جایگاهی بی‌ارزش و فاسد است.

خانه‌ای است که یک روز آن شادی و روز دیگرش گریه است، چنین خانه‌ای نابود باد.

بنابراین، انسان دانا کسی است که این دنیا را فقط به اندازهٔ رفع احتیاج خود بخواهد، وبرای به دست‌آوردن نعمت‌های دنیای باقی وورود به بهشت تلاش کند. خداوند متعال می‌فرماید:

(وللآخرة خير لک من الاولی) [الضحی: ٤]

ترجمه: «و به یقین آخرت برای تو از دنیا بهتر است.«!

عاقل کسی است که به دنبال سعادت و خوشبختی همیشگی برود و در جستجوی بهشت باشد و برای به دست‌آوردن نعمت‌های بیکران آن تلاش کند، راه به دست‌آوردن جنت یقین‌داشتن به توحید و یگانگی الله تعالی و اتباع و پیروی رسول خدا محمد صلی الله علیه وسلم و أدای فرائض و واجبات و دوری‌نمودن از اعمال فاسد، گناهان کبیره و کارهایی که خداوند حرام نموده است می‌باشد، و همچنین نزدیک‌شدن به پروردگار به وسیلهٔ انجام نوافل و اعمال صالح و توبه وانابت به سوی پروردگار در هنگام تاریکی وخلوت و استغفارنمودن از خطاها و گناهان ولغزشهاست، و رفتن به دنبال فراگیری علم ودانش و سعی‌نمودن برای فهمیدن وعمل‌کردن به علم و مداومت بر اخلاص وصدق و راستی با الله تعالی می‌باشد، زیرا جویندهٔ این طریق در یقین و یافتن راه سعادت ناکام نمی‌شود و جدیت و کوشش وی ضایع نخواهد شد. خداوند متعال می‌فرماید:

وَالْعَصْرِ (١)إِنَّ الإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ (٢) إِلاالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ (٣)[العصر: ١ – ٣].

ترجمه: «سوگند به زمان (که سرمایهٔ زندگی انسان و فرصت تلاش او برای نیل به سعادت دو جهان است)! انسان‌ها همه در زیان هستند. مگر کسانی که ایمان می‌آورند، و کارهای نیکو و شایسته انجام می‌دهند، و یکدیگر را به تمسک به حق (در عقیده و قول و عمل) سفارش می‌کنند، و یکدیگر را به شکیبائی (در تحمل سختی‌ها و دشواری‌ها و دردها و رنجهائی) توصیه می‌نمایند (که موجب رضای خدا می‌گردد.

ناظم (یکی از علمای اسلامی) می‌گوید: برادرم! آیا راه‌های ورود به جنت را می‌دانی؟

از کتاب: وصف جنت

# جنګي جنايتونه

## (مځ)

دروان (۲۰۱۵،ز) کال دمئ دمیاشتي په لومړۍ نیټه د زابل ولایت د شاجوی ولسوالۍ په باغتو کلي کې کورنیو عسکرو د چاپې پرمهال د یو ملکي سړي (حاجي عبدالباري) پنځلس کلن زوی د بندي په توګه له ځان سره وړی دی .

دمئ په ۴مه د هرات ولایت د شینډنډولسوالۍ په بارتخت سیمه کې داخلي عسکرو پر یو موټر سایکل ډزي کړي چي له امله یې یوه ښځه شهیده شوې او سړی ژوبل شوی دی.

د مئ په ۴مه د فاریاب ولایت د المارولسوالۍ په دیوانه خانه سیمه کې له طالبانو سره ترجګړې وروسته د داخلي عسکرو د هاوان په ډزو کې څلور کوچنیان اویو تن ملا امام ژوبل شوی دی .

دمئ په ۵مه د فراه ولایت د بالابلوک ولسوالۍ په شوراب کلي کې د داخلي عسکرو د هاوان په برید کې چې توغندی یې پر یوکور لګیدلی یو ماشوم شهید شوی دی .

دمئ په ۷ مه د پروان ولایت د بګرام ولسوالۍ په ګجر خېلو کې یرغلګرو عسکرو پر لمونځ کونکو ډزي کړي، چي له امله یې یو تن سخت ژوبل شوی دی ، خلګو د یرغلګرو ددې عمل پر ضد د کاپیسا – پروان لار داحتجاج په توګه د ترافیکو پرمخ تړلې وه او مرګ بر امریکا شعارونه یې ورکول .

دمئ په ۹ مه د هرات ولایت د شینډنډ ولسوالۍ په بازار کې کورنیو عسکرو یو ملکي وګړی شهید کړی، ددې پیښې په غبرګون کې یوه ورځ وروسته خلګو دشینډنډ په بازار کې مظاهره وکړه او دمجرم د محاکمه کولو غوښتنه یې کوله .

د مئ په ۱۰ مه یرغلگرو دافغان عسکرو په ملتیا د ننگرهار ولایت د خوږیانو ولسوالۍ په خیرمني او ژوري سیمو کي د عملیاتو په لړ کي د ملک نقیب الله په شمول د نومـوړي د کـورنۍ دوې میرمني شهیداني کړي او په لسهاوو ملکي وگړي یې بندیان کړي دي .د ځایې خلگو په وینا په دغو عملیاتو کي عسکروددوی له کورونو څخه قیمتي شیان له ځان سره وړي دي .

د مئ پـه ۱۳ مـه د لغمان ولایـت د قرغیـو ولسوالۍ په امبیر سیمه کي د یرغلگرو په بمبار کي دوه تنه ملکـي وگـړي چـي ښکار تـه روان ووشهیدان شوي او یو نفر ژوبل شوی دی .

د مئ په ۱۴ مه د بدخشـان ولایـت د جـرم ولسوالۍ په مربوطاتو کـي داخـلي عسکرو یـو ملکي وگړی شهید کړ ی د ی.

دمـئ پـه ۱۴ مـه د غـزني ولایـت د شـلگر ولسوالۍ خلگو رسنیو ته وویل چي اربکیـانو د یادي شـوي ولسـوالۍ ۱۴ کـلي کـډه کولـو تـه اړ ایسـتلي دي، دوی وایـې چـي اربکیـان یـې پرکورونـو چـاپې وهـي، پـه یـو او بـل نـوم یـې ځوروي او ځوانان یې بندیانوي .

د ولسي وگړو په وینا اربکیانو په تېرو څـو ورځو کي له شهبازوال کـلي، ۱۷ تنـه، لـه خـز کلي ۱۸ تنه، له مرادي کلي ۱٦ تنه، له اتل کـلي ۱۴ تنه، له غوله کلي ۱۱ تنه، له میـدادوال کـلي ۱۲ تنه، له دبلي کلي ۱۰ تنه، له عاقـل کـلي ۱۰ تنه، له گلو کلي ۱۴ تنه، له خوشحال کلي ۹ تنه، له روستم کلي ۱۲ تنه، له منار کلي ۱۳ تنه او له نظروالو کلي څخه ۱۸ تنه ځوانان د بندیانو پـه توگــه لــه ځــان سره د ولســوالۍ مرکــز او یوشمېر پوستو ته وړي دي .

دولسيـ خلگوپـه وینـا چـي کلـه دخپلـو بچیانو دراخلاصولو په موخه ولسوالۍ تـه ولاړل د اربکیانو قوماندان لطف الله کامران او سلطان جاسو ورته وویل چي یادي د دوی پـه ملگرتیـا ټوپک غاړي ته واچوي کنه نوله سـیمي څخـه دي کډي وکړي .

د مــئ پــه ۱۵ مــه د بدخشــان ولایــت دوردوج ولسوالۍ په خاشبین او استرب سـیمو کي د کورنیو عسکرو د توپچي په ډزو کـي درې کوچنیان شـهیدان شـوي او دوې ښـځي اودوه نارینه ژوبل شوي دي، د توپخـانې پـه یادشـوی برید کي د ولسي خلگوځلور کورونه هـم ویجـاړ شوي دي .

دمئ پـه ۱٦ مـه د میـدان وردگ ولایـت د جلریز ولسوالۍ د زیولات په زیمنیو سیمه کي د

داخلي عسکرو دهاوان په ډزو کې درې ماشومان ژوبل شوي دي.

د مئ په ۱۷ مه د کندهار ښار صرافۍ مارکیټ ته نږدې دجنرال رازق عسکرو یو ټکسي چلونکی شهید کړی دی .

د مئ په ۱۸ مه د میدان وردګ ولایت د سید اباد ولسوالۍ په شش قلعه سیمه کي پر یو کور باندي د یرغلګرو په بمبار کې یو ملکي وګړی شهید شوی او ګڼ نور ټپیان شوي دي، د عیني شاهدانو په وینا وروسته له هغه بمبار وشو چي په دغه سیمه کي د بهر نیو ځواکونو یو ټانګ د ماین په انفجار کي پارچه پارچه شو .

دمئ په ۲۰ مه د بغلان ولایت د مرکزي بغلان ولسوالۍ خلګو رسنیو ته ویلي چي : د ګډ حکومت په عملیاتو کي چي د تېرو شلو ورځو راهیسي په سیمه کي روان دي لس تنه ولسي- وګړي شهیدان شوي او اته ویشت تنه ژوبل شوي دي،خلګو ویلي چي په شهیدانو اوټپیانو کي ښځي او کوچنیان هم شامل دي .

د مئ په ۲۱مه د کونړ ولایت د وټه پور ولسوالۍ په کټارالمازو سیمه کي د یرغلګرو په بمبار کي درې تنه ولسي وګړي چي په لاره روان وو شهیدان شوي دي .

دمئ په ۲۱مه د پکیتا ولایت د پټان ولسوالۍ په مقبلو غونځي سیمه کي د داخلي عسکرو د توپچي په ډزو کي یوه ښځه او دوه کوچنیان ټپیان شو ي دي .

د مئ په ۲۷ مه د غزني ولایت د خوږیانو ولسوالۍ په کاریز او زاړه ښار سیموکي د کورنیو عسکرو د هاوان په ډزو کي دوې ښځي اودوې ماشومي نجوني ژوبلي شوي دي .

د مئ په ۳۱مه د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ په طورخیل کلي باندي داخلي عسکروچاپه وهلې، د خلګو کورونه یې تلاشي کړي او مالي زیانونه یې ورته اړولي دي، وروسته د عسکرو د هاوان په ډزو کي چي د استوګني پر سیمه او یو مکتب لګیدلي یو معلم او دوه زده کونکي شهیدان شوي او دوې ښځي، یو ماشوم او یو سپیږیری ژوبل شوی دی .

مأخذونه :[بي بي سي راډیو،ازادي =، افغان اسلامي اژانس، پژواک ،خبریال ویبپاڼه، لراوبر=، نن ټکی اسیا=اوبینوا=]



# د دعوت ارشاد جلب او جذب کميسون

## دمئ د مياشتي راپور

دروان (۲۰۱۵م )کال دمئ په مياشت کي هم دتېرومياشتوپه شان داسلامي امارت ددعوت، ارشاد،جلب اوجذب کميسيون په هڅواودڅاېي مجاهدينوپه ملاتړ د افغانستان په مختلفو ولاياتوکي ۶۷۹ تنه چي دکابل اداري اړوند بيلا بيلو ارگانونو کي په کاربوخت وو دحقايقوپه درک کولو ددغه فاسد او گوډاګي رژيم څخه راووتل اوداسلامي امارت دمجاهدينوسره يوځای شول .

**گرانولوستونکودا هم دتسليم شوو کسانو مياشتني ارقام :**

| | |
|---|---|
| ننگرهار: ۴۳تنه عسکر | |
| کندوز: ۸۸تنه عسکر | |
| پکتيکا: ۳۳تنه عسکر | |
| لوگر: ۱ تن عسکر | |
| غور: ۲۵۳تنه عسکر | |
| نيمروز: ۱ تن عسکر | |
| باميان : ۱ تن عسکر | |
| پکتيا: ۵ تن عسکر | |
| کونړ: ۷ تن عسکر | |
| لغمان : ۲۱ تنه عسکر | |
| هرات : ۱۰تنه عسکر | |
| سرپل: ۷تنه عسکر | |
| ارزگان : ۹۱تنه عسکر | |
| غزني : ۱۲ تنه عسکر | |
| پروان : ۱ تن عسکر | |
| هلمند: ۲۱تنه عسکر | |
| فراه : ۲۷۵ تنه عسکر | |
| فارياب : ۲۳تنه عسکر | |
| دايکندي : ۱ تن عسکر | |

اوپه ميدان وردگ ولايت کي ۲۸ تنه با احساسه عسکر او منسوبين د اسلامي امارت داتلومجاهدينوسره يوځای شول بادرکه هيوادوالو مختلفه النوع لويې اووړې وسلې ،مخابرې ،وسايط اويوزيات شمېرمهمات مجاهدينوته وسپارل .

دکابل دمنفوررژيم څخه راجلاشوواوداسلامي امارت له مجاهدينوسره يوځای شوو هيوادوالو وعده وکړه چي نوربه دخپل ددين اووطن دخارجي اوداخلي مزدورانوسره هيڅ رازتعلق نه ساتي ،دخپل مظلوم ولس اومجاهدينو وروڼو سره به همکاري کوي ،ترڅولوی خدای جل جلاله ژرترژره زموږ له وياړلې خاوري څخه دکفر، فسق ،،اشغال ،فحشاء اوگمراهيو کرغيړن ټغرټول کړي او دمسلمانانو دخوښي يوسوچه اسلامي واکمني رامنځته کړي چي دټول افغانان پرې راټول شي .

داسلامي امارت ددعوت، ارشاد، جلب اوجذب کميسيون مشرتابه دوی ته هرکلی ووايه ،انعامونه اوجايزې يې ورکړې اوددوی همدانيک اقدام يې ډيرو ستايه چي ديرغلگرو اولاسپوڅي رژيم څخه يې راووتل او دافغانستان اسلامي امارت دمجاهدينو سره يې خپل پيوستون اعلان کړ .

دافغانستان اسلامي امارت دگران هيوادڅخه دوحشي- يرغلگرو دشړلو اوداسلامي اوملي نظام درامنځته کولوپه موخه دران سپېڅلی مقاومت په لړکي دنظامي فعاليت ترڅنگ سياسي ،فرهنگي ،تعليمي اودعوتي هڅي هم گړندۍ کړي دي داسلامي امارت غښتلي مجاهدين دپراخوپوځي لاسته راوړنو څخه علاوه هره مياشت دهيوادپه بيلا بيلو ولايتونواوولسواليوکي ددعوت اوارشادکميسيون په هڅو له پورته چي ذکرشول دکابل اداري څخه په سلهاوو تنه کارمندان راوزي اوداسلامي امارت غيږي ته پناراوړي.

دعوت او ارشاد کميسيون

# دننگرهار مجاهدو او مؤمنو پرګنو !

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته !

تاسي په جريان کې یاست چې متعال رب ( جل جلاله ) دافغان ولس دپاکوقربانیواوټینګ جهادي عزم په برکت دافغانستان اسلامي امارت ترمدبرانه اودلسوزه قیادت لاندې ، دتیرو۱۴ کلونو په اوږدوکې دامریکا، ناټو او دهغوی دنړیوال شیطاني ایتلاف ټول قوت اوبه، ستراتیژۍ اوډول ډول حربي يې او بالاخره يې تیښتي ته اړ کړ.

دامریکاپه مشرۍ نړیوال طاغوت دافغان مجاهد ولس په وړاندې دخپل وحشت او استعماري موخو دپلي کولوپه خاطر یواځې په پوځي زور ازمویی بسنه نکوله، بلکې هرهغه نیرنګ او دسیسه يې په کار اچوله چې فکر يې کاوه دروان جهاد قوت به کمزوری اوداسلامي امارت هیبت اوغرور به خدای مکړه متزلزل اوله پوښتني سره مخ کړي.

مکارو دښمنانوبه داسلامي امارت په لیکوکې ددرز اچولوپه نیت دمعتدلواوسخت دریځو طالبانو له دسیسي رانیولي ، دسولې اوپخلاینې اوډول ډول جعلی جرګو اوغونډو ترجوړولو پورې بیدریغه هڅې په کار واچولې ،ترڅو دافغانستان دخلکو دجهادي اوملی هیلو دتمثیلونکي اسلامي امارت لیکي سره ټوټه اوپه هیواد کې دیوه سوچه اسلامي نظام مخه ډب کړي ، خو الله تعالی دغه ټولې حربي اوشوم پلانونه په خپل وخت کې شنډ، رسوا او اسلامي امارت له سترو ازموینو کامیاب او سرلوړی راووت .

اوس چې الله تعالی دبشپړې فتحې شیبې رالنډې کړي اوکلک امیددی چې الله تعالی به دعزم دنجات بښونکوعملیاتو په ترڅ کې سږ کال ارومرو دامریکاداشغال ورستی ځالي او هم دهغوی دتالیځپوشتون اوفعالیت ته دپای ټکی ږدي اوپه هیوادکې به دیوه سپیڅلي اسلامي نظام حاکمیت ته زمینه برابریږي ، نو په دغو حساسو اومهموشرایطو کې استعمار داربکیانو په ناولي پروژي سربیره دغلواواختطاف ګرو ګروپونوپه تمویل اوسرمایه ګزاری لاس پورې کړ،چې ښکاره مثالونه يې دننګرهار په یوشمیرسیمو کې دهغوی تحرک اوسرراپورته کول دي .

دافغانستان اسلامي امارت چې داسلامي ارزښتونو ددفاع ترڅنګ دهیواد له استقلال او دخپل ولس دعزت، مال او سر دساتني دیني اوملي دنده او مسؤلیت لري ،نو تکل يې کړی چې دغه مخرب اوشوکمار ګروپونه چې هدف يې دمخلصو مسلمانانو ځورول اوداسلامي امارت دواحدصف ټوټه کول دي ، کلکه اوعبرتناکه سزا ورکړي اوسیمه دهغوی له شراوفساد څخه پاکه اوستره وګرځوي .

اسلامي امارت دننګرهار له مومنو اوویښو پرګنو او ولسونوڅخه غوښتنه کوي چې په دغه عزم کې له اسلامي امارت سره لکه دتیر په څیر اوږه په اوږه ودریږي اوخپل هرډول مرسته او همدردی ورسره شامل حال وګرځوي.

# مجاهده!

(عرفان الله عرفان)

پیکا دې نظر مشه کړه ضربې په ترنم
کېکاږه په تنکۍ ګوته ماشې په ترنم

ډېر خوند کړي چې تاو کړي تا پر ملا تور شریدونه
ژوندی کړه دا مړژواندې حماسې په ترنم

سم تندر د اسمان دې د راکټ هیبتي کړنګ دی
غلیم باندې کړه جوړې زلزلې په ترنم

دښمن درنه خطا نشي رسایي په سر وله
له هر لوري پرې کړه مستې حملې په ترنم

لښکرې د سپین لمر دې ملګرې د کاروان که
د نور په غشو وله توري شپې په ترنم

ور پورته شه منبر ته، ته خو هم د بلال ورورېې
راویښې یو ځل بیا کړه پرګنې په ترنم

له دار او له ځنځیر نه ګوره هېڅ خطره ونکړې
زندان کې شرنګوې به زولنې په ترنم

که لاړلې جانانه په پاک دین باندې شهید شوې
کوثر باندې به څښې ډکې پیالې په ترنم

چې پروت یې پر میدان او په سرو وینو یې لړلی
راځي به درته حورې مېلمنې په ترنم

چې کله له ډګره بریمن کلي ته راشې
بیا وایي عرفاني به ترانې په ترنم

# کابل

## شکردره کې په پوستو بریدونه وشول

د کابل ولایت د شکردرې ولسوالۍ په بهزادي سیمه کې د دښمن په پوستو بریدونه وشول چې په مهال یې ۴ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته او ودانۍ هم زیانمنې شوې. ۰۱-۰۵-۲۰۱۵

## پغمان کې پوسته فتحه او ۴ پولیس ووژل شول

بیګا شپه ۳ بجې د کابل ولایت د پغمان ولسوالۍ په حکیم قلعه سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو، د برید په پای کې پوسته په بشپړه توګه فتحه شوه او ۴ تنه پولیس پکې ووژل شول، مجاهدینو په پوسته کې ۴ میله سپکه او درنه وسله له تجهیزاتو سره غنیمت کړه. ۰۱-۰۵-۲۰۱۵

## قره باغ کې په رینجر چاودنې ۳ عسکر ووژل

د کابل ولایت د قره باغ ولسوالۍ په لوګرییو سیمه کې د مزدوري اردو په رینجر موټر چاودنه وشوه چې په پوره ډول یې تخریب کړ، چاودنې په موټر کې ۳ عسکر ووژل او ۱ یې ټپي کړ. ۰۱-۰۵-۲۰۱۵

## کابل کې په پوسته برید ترسره شو

د کابل ښار د ۱۷مې ناحیې په بادام باغ سیمه کې د دښمن په پوسته برید ترسره شو چې په ترڅ کې یې ۱ پولیس ټپي شو. ۰۱-۰۵-۲۰۱۵

## سروبي کې ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په تیزین کلالانو سیمه کې د دښمن په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر تخریب شو، ۱ عسکر قتل او ۴ نور ټپیان شول. ۰۲-۰۵-۲۰۱۵

## قره باغ کې په رینجر ماین وچاودید

د کابل ولایت د قره باغ ولسوالۍ په اوتکي کوتل سیمه کې د پولیسو رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر پوره تخریب شو خو دښمن ته د اوښتي مرګ ژوبلې شمېره نه ده څرګنده شوې. ۰۲-۰۵-۲۰۱۵

## د کابل په زړه کې د څارنوالانو په بس فدایي برید ۲۰ څارنوالان ووژل

د کابل ښار په دارالامان سیمه کې سناتوریم ته نژدې د ګوډاګی اداري د لویې څارنوالي د څارنوالانو په ۳۰۴ موټر د فدایي مجاهد قومندان نورالدین تخاري لخوا چې ۶۵ کاله عمر یې درلود، فدایي برید ترسره شو، د ل معلوماتو له مخې د دې اتلوال برید له امله په بس کې ۲۰ څارنوالان ووژل شول او له ۲۰ زیات ټپیان شول. ۰۴-۰۵-۲۰۱۵

## په کابل کې په رینجر چاودنې ۱ عسکر ووژه

د کابل ښار اړوند په ارغندۍ سیمه کې د مزدوري اردو په رینجر چاودنه وشوه، د چاودنې له امله د رینجر په تخریبېدو سربېره ۱ عسکر ووژل شو او ۲ نور ټپیان شول. ۰۵-۰۵-۲۰۱۵

## سروبي کې په کاروان برید شوی

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په ماهیپر سیمه کې د دښمن په کاروان وسلوال وسلوال برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته او یو کانټینر چې د تېښتې په حال کې و، چپه او تخریب شو. ۰۷-۰۵-۲۰۱۵

## شکردره کې ۲ رینجر تخریب او ۳ پولیس ووژل شول

د کابل ولایت د شکردرې ولسوالۍ په حسین کوټ سیمه کې د کابل – چاریکارو د عمومي سرک په سر په پولیسو وسلوال برید ترسره شو، په برید کې د ۲ رینجرو په تخریبېدو سربېره ۳ پولیسو خپل ژوند له لاسه ورکړ او ۵ نور ټپیان شول. ۰۸-۰۵-۲۰۱۵

## سروبي کې د دښمن ۱ بلډوزر او ۱ ټیلر وسوزول شول

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په کولالانو سیمه کې د دښمن په اکمالاتي موټرو برید ترسره شو، په برید کې ۱ بلډوزر او ۱ ټیلر موټر په بشپړه توګه وسوزول شول. ۰۸-۰۵-۲۰۱۵

## سروبي کې په پوسته او کاروان برید وشو

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په ماهیپر سیمه کې شینوارو پله ته نژدې د دښمن په پوسته او کاروان برید ترسره شو، د برید له امله د پوستې ودانۍ زیانمنه شوه او د کاروان ۱ کانټینر تخریب شو. ۲۰۱۵ -۰۵- ۰۹

## د کابل فدایي برید کې ۱۸ لوړ پوړي څارنوالان ووژل شول

د کابل ښار د شېرپور حوزې اړوند د سناتوریم په سیمه کې د کابل غلامې اداري د فاسدې او ظالمې لویې څارنوالۍ د لوړ پوړو کارکونکو په لیږدونکي کاسټر موټر د یو تن استشهادي مجاهد ملا نعمت الله آغا له لوري اتلوال استشهادي برید ترسره شو، د برید په مهال په موټر کې تر پنځه ویشت پوري څارنوالان سپاره وو چې د دقیقو معلوماتو له مخې ۱۸ تنه لوړپوړي څارنوالان مړه او پاتې نوري یې ټپیان شول. ۱۰-۰۵-۲۰۱۵

## سروبي کې په کاروان برید شوی

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په ډبیلي سیمه کې د دښمن په کاروان برید ترسره شو، په برید کې ۱ رینجر موټر تخریب شو او عسکرو ته د اوښتي مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۱۱-۰۵-۲۰۱۵

## سروبي کې چاودنې ټانګ او ۶ عسکر له منځه یوړل

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په اوزبین چنار سیمه کې د مزدوري اردو

زغروال ټانګ په ماین والوزول شو، چاودنې ټانګ ویجاړ کړ او ۶ تنه مزدور عسکرې ووژل. ۱۱-۰۵-۲۰۱۵

### کابل کې تکتیکي چاودنې رینجرویجاړاوپولیسوته مرګ ژوبله واړوله

د کابل ولایت د ښار د ۶مې حوزې اړوند د دارالامان په سرک د پولیسو په رینجر موټر درنه تکتیکي چاودنه وشوه، د چاودنې له امله موټر په بشپړه توګه داور خوراک شواو پکې ناستو پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۳-۰۵-۲۰۱۵

### سروبي کې په ۲ پوستو بریدونه وشول

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په ډبیلي او استحکام پله سیمو کې د دښمن په پوستو بریدونه ترسره شول، د بریدونو له امله دښمن ته د اوښتي زیان په اړه دقیق معلومات نشته. ۱۴-۰۵-۲۰۱۵

### کابل کې د پکتیا د څارنوالۍ رئیس نجیب سلطانزوی ووژل شو

د کابل ښار اړوند په نیابیګ سیمه کې د پکتیا ولایت د څارنوالۍ مشر حاجي نجیب سلطان زوی د غلچکي برید په مهال ووژل شو. ۱۵-۰۵-۲۰۱۵

### قره باغ کې په ګزمه برید وشو

د کابل ولایت د قره باغ ولسوالۍ په شهرک سیمه کې د مزدوري اردو په پلي او موټریزه ګزمه وسلوال برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل اما په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۵-۰۵-۲۰۱۵

### د کابل هوايي اډه په توغندیو وویشتل شوه

د کابل ولایت د خواجه رواش په هوايي ډګر توغندي وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته زیان واوښت اما په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۶-۰۵-۲۰۱۵

### په کابل کې فدايي برید ۱۲ اشغالګرو عسکرو ته مرګ ژوبله واړوله

د کابل هوايي ډګر نظام قرارول سره نیږدې سیمه کې د بهرنیو اشغالګرو ځواکونو په کتار دقهرمان فدايي مجاهد سیف الله لخوا د کرولا موټر په وسیله فدايي برید ترسره شو، په برید کې د اشغالګرو ځواکونو دوه ټانکونه په نښه شول چې یوټانک مکمل ویجاړ او دوهم نیمه ویجاړ شو، د دقیقو معلوماتو په اساس په برید کې ۷ تنه اشغالګر عسکر ووژل شول او ۵ تنه نور مرګوني ټپیان شول، په پیښه کې ځینې ملکي خلک هم په شیشو او ډبرو باندې سطحي ټپیان شول. ۱۷-۰۵-۲۰۱۵

### سروبي کې په کاروان برید ترسره شو

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په ماهیپر سیمه کې د مزدوري اردو په کاروان وسلوال برید وشوچې دښمن ته پکې مالي او ځاني تلفات واوښتل. ۱۹-۰۵-۲۰۱۵

### د کابل اداري د عدلې وزارت ګڼ لوړپوړي او ټیټ پوړي کارمندان په فدايي برید کې مړه او ژوبل شول

د کابل ښار دننه د عدلې وزارت د کارمندانو د موټرو په تم ځای کې هغه مهال یو تن فدايي مجاهد د موټر په توسط فدايي برید ترسره کړ چې لوړپوړي او ټیټ پوړي کارکونکي له دندو رخصت او موټروته پورته کیدل، په برید کې د دښمن دعدلې ظالم ارګان لسګونه لوړپوړي او ټیټ پوړي کارمندان مړه او ژوبل شول او په لسهاوو موټرې ویجاړ شول. ۱۹-۰۵-۲۰۱۵

### د کابل په زره کې چاودنې ۲ پولیس ووژل

د کابل ښار اړوند په کارته نو سیمه کې د عزم عملیاتو په لړ کې د پولیسو په رینجر چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ پولیس قتل او رینجر تخریب شو. ۱۹-۰۵-۲۰۱۵

### کابل کې قرارګاه په میزایلو وویشتل شوه

د کابل ښار اړوند د چهار راهي قمبر په سیمه کې د داخلي او خارجي عسکرو په قرارګاه میزایل وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل او له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۲۳-۰۵-۲۰۱۵

### کابل کې د میدان وردګ د ترویزد رئیس موټر په ماین والوت

د کابل ښار اړوند په کمپنۍ سیمه کې د میدان وردګ ولایت د ترویزم د رئیس په موټر تکتیکي چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر پوره تخریب شو خو د نوموړي په اړه دقیق معلومات نشته. ۲۳-۰۵-۲۰۱۵

### سروبي کې ۲ رینجر تخریب او ۴ عسکر ووژل شول

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ اړوند د ملاسرخاب قبر ته نژدې د جلال اباد په لویه لاره د پولیسو په پوسته او د مزدوري اردو په کتار وسلوال برید وشو، په برید کې د پوستې ودانۍ او ۲ رینجر موټر تخریب شول، په دې سربېره ۴ پولیس قتل او ۶ نور ټپیان شول. ۲۴-۰۵-۲۰۱۵

### سروبي کې په کاروان برید وشو

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په کړکین سیمه کې د دښمن په کاروان برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل اما په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۶-۰۵-۲۰۱۵

### سروبي کې ۱ رینجر تخریب او ۵ پولیس ووژل شول

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په کلالانو سیمه کې د دښمن په کاروان برید وشواو په ترځ کې یې ۱ رینجر موټر تخریب او ۵ پولیس ووژل شول، مجاهدینو د جګړې په مهال ۱ میل پیکا او ۳ کلاشنکوفونه غنیمت کړل. ۲۸-۰۵-۲۰۱۵

کابل کې د میدان وردګ ولایت د تروزیزم د مدیر موټر په ماین والوزول شو

د کابل ښار اړوند د کمپنۍ په قلعه عبدالعلي سیمه کې د میدان وردګ ولایت د ترویزد رئیس جاوید موټر په ماین والوزول شوچې پوره تخریب شو، په پېښه کې دنوموړي د مرګ په اړه دقیق معلومات نه دي ترلاسه شوي. ۳۰-۰۵-۲۰۱۵

**سروبي کې ننګرهار ته د نومول شوي والي په موټرو برید وشو**

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په بند سیمه کې ننګرهار ته د نوي معرفي شوي والي (کندوزي) په موټرو وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۲ ټانکر موټر تخریب شول او د مرګ ژوبلې شمېره نه ده څرګنده شوې. ۳۰-۰۵-۲۰۱۵

**سروبي کې په کاروان برید، ۱ ټانکر تخریب شو**

د کابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په کړکین او کنډاول سیمو کې د دښمن په موټریز کاروان برید ترسره شو، په برید کې ۱ ټانکر تخریب شو او ۲ عسکر ټپیان شول. ۳۱-۰۵-۲۰۱۵

# قندوز

**امام صاحب: ۱ تانگ تخریب و۳ عسکر کشته شدند**

مجاهدین با قوای عملیاتی دشمن در منطقه قشلاق دهقان ولسوالی امام صاحب ولایت قندوز شدیدا درگیر شدند که در نتیجه یک تانگ زرهدار دشمن تخریب و۳ عسکر کشته ویک تن دیگر زخمی و متباقی قوای دشمن از منطقه فرار نمودند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**امام صاحب: ۸ عسکر دشمن کشته شدند**

مجاهدین عساکر دشمن در منطقه قشلاق دهقان ولسوالی وامام صاحب ولایت قندوز حمله کردند که در نتیجه هشت ۸ عسکر دشمن کشته و۱۲ تن دیگر شدیدا زخمی و متباقی پای به فرار نهادند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**امام صاحب: ۳ اربکی کشته شدند**

مجاهدین در منطقه کلتیپه ولسوالی امام صاحب ولایت قندوز اربکی ها را که پیاده روان بودند مورد حمله قرار دادند که در نتیجه سه تن اربکی کشته و شما زیادی دیگری زخمی ومتباقی پای به فرار نهادند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**مرکز: ۳ عسکر کشته وزخمی شدند**

مجاهدین بر عساکر دشمن در منطقه تیلاوکه جمعه بای نزدیک مرکز ولایت قندوز حمله کردند که در نتیجه یک عسکر کشته و۲ تن دیگر شدیدا زخمی شدند.طبق خبر دیگر نیز بتاریخ ذیل درمنطقه الچینو نیز بر عساکر دشمن حمله صورت گرفت وبه دشمن تلفات سنگین وارد گردیده و اما از رقم آن دقیقا گذارش داده نشده است.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**مرکز: یک رینجر دشمن شکار ماین گردید**

یک رینجر اردوی اجیر در نزدیک مرکز ولایت قندوز شکار ماین گردید که در نتیجه رینجر دشمن تخریب و تمامی عساکر سرنشینان آن کشته وزخمی شدند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**مرکز: ۶ عسکردشمن کشته شدند**

مجاهدین بر عساکر اردوی اجیر در منطقه باغ شرکت نزدیک مرکز ولایت قندوز حمله کردند که در نتیجه شش ٦ عسکر دشمن کشته و۵ تن دیگر شدیدا زخمی شدند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**چهاردره: یک پوسته با ۲ قریه بزرگ فتح گردیدند**

مجاهدین یک پوسته دشمن را در منطقه سرک بالا ولسوالی چهار دره ولایت قندوز مورد حمله قرار دادند که در نتیجه پوسته جمال الدین قوماندان اربکی فتح وقریه های سیدعطا و چوراغو کاملا از لوث اربکی ها پاکسازی گردیدند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**مرکز: یک تانگ نابود و۴ عسکر کشته شدند**

یک تانگ زرهدار اردوی اجیر در منطقه تیلاوکه در نزدیک قریه جمعه خان مرکز ولایت قندوز شکار ماین گردید که در نتیجه تانگ دشمن تخریب و۴ عسکر کشته شدند.۰۱-۰۵-۲۰۱۵

**امام صاحب: طی انفجار بر تانگ ۵ عسکر کشته شدند**

یک تانگ زرهدار اردوی اجیر در منطقه بایکه ولسوالی امام صاحب ولایت قندوز شکار ماین گردید که در نتیجه تانگ دشمن نابود و۵ عسکر دران کشته شدند.۰۲-۰۵-۲۰۱۵

**امام صاحب: دوعسکردشمن بهلاکت رسیدند**

مجاهدین دریک حمله مسلحانه در منطقه کول دامن ولسوالی امام صاحب ولایت قندوز دو ۲ عسکر مزدور را به قتل رساندند ویک عسکر دیگر زخمی گردید.۰۲-۰۵-۲۰۱۵

**چهاردره: یک پوسته فتح گردید**

مجاهدین یک پوسته دشمن را که بنام پوسته قوماندان ضیاء اربکی یاد میگردید در منطقه سرک بالا ولسوالی چهاردره ولایت قندوز فتح نمودند.۰۲-۰۵-۲۰۱۵

**امام صاحب: ۲ عراده رینجر تخریب و۸ پولیس کشته شدند**

مجاهدین عساکر پولیس اداره مزدور را طی یک حمله مسلحانه در منطقه قشلاق دهقان ولسوالی امام صاحب ولایت قندوز مورد حمله قرار دادند که در نتیجه دو ۲ عراده رینجر تخریب و ۸ تن پولیس کشته و شش ٦ تن دیگر شدیدا زخمی شدند.۰۲-۰۵-۲۰۱۵

**امام صاحب: طی حمله بر بیس دشمن ۵ عسکرکشته شدند**

مجاهدین بر بیس دشمن درمنطقه تاشگزر ولسوالی امام صاحب ولایت قندوز حمله کردند که در نتیجه ساختمان بیس خساره مند و ۲ تن ابکی، ۲ عسکر ویک سپیشل فورس کشته و۴ تن دیگر شدیدا زخمی شدند و۳ تن

